د اروابناد ملنګ جان د څلويښتم تلين سيمينار

د ملنګ جان

# خوږې نغمې

(غورچاڼ)

د اروابناد ملنګ جان د څلویښتم تلین سیمینار

د ملنګ جان

# خوږې نغمې

(غورچاڼ)






# د کتاب پېژندنه:

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | د ملنګ جان خوږې نغمې |
| خپرندوی | : | ننګرهار فرهنګي ټولنه |
| چاپ کال | : | ۱۳۷٦، لړم |
| چاپ شمېر | : | پينځه سوه ټوکه |
| مخونه | : | ۹۳ |

هله به خوند د ملنګ جان شعر و مضمون وکړي
چې لرو بر پښتانه ټول پکې ګډون وکړي

# د ملنګ جان د بیلتون څلوېښتمه

څلویشت کاله وړاندې پر همدې ورځ (۱۳۳۶ لمریز د لړم پر لسمه)
د پښتو د اولسي ادب یو خوږ ژبی او اور ژبی بېنوا بلبل د اجل لړم د زړه پر سر وچیچه او له ملي او حماسي سندرو یې پرې ایست.
انا لِله و اِنا الیه راجعون
دا د پښتو د اولسي ادب په زېرمه کې د قومي، ملي، حماسي سندرو او نغمو لومړنی ځایوونکی او نوښتګر محمد امین ملنګ جان و، چې پر ۱۲۹۳ د ننګرهار د بهسودو په چمیار کې د عبد الشکور د پښتني شملې ګل شو. دا بېدیانی ګل د زماني د ناخوالو __ له سیلۍ نه داسې په امان پاتې شو، چې خوږ بویې او ورېمې یې ټوله پښتونخوا خوږ بویه کړه.
د پښتو لیکني ادب د تاریخ له پیل راهیسې چې سمدلاسه یې متې د امیر کروړ حماسي ببلکه پر لاس لرو، له اولسي شاعرانو ځنې هېڅوک داسې نه پېژنو، چې خپل هنر او هنري ځواک یې له یوې مخې د حماسو زېرېندو ته ایستلی وي، له ملنګ جان پرته بل داسې څوک نه وینو چې د حماسو تله یې دومره درنه وي،
پاتې شوه د اروابناد ملنګ جان د سندرو او نغمو دا غبرګ خبره، نو په دې لړ کې خو به زه ملنګ جان تر رحمان بابا را وروسته لومړی شاعر وبولم، چې وینا یې دومره د اولس د زړونو تل ته لوېدلې ده او له مهال تېرېدنې سره سره یې د نغمو او سندرو د اورېدو لېوالتیا دومره زیاته ده، چې تر اوسه زما دپلټنې له مخې اولس دخوږو نغمو د خوږلنی انګازه اوه ځله اورېدلې ده:
لومړی ځل پر۱۳۵۳ کال دښاغلي بختاني او پوهاند رښتین په زیار.
لومړی

دويم ځل(له نويو زياتونو سره)پر ۱۳۴۸ کال د ښاغلي بختاني په زيار.
دريم ځل پر ۱۳۷۰ کال(۱۰+۵۴۶)مخونه دعلامه سيدجمال الدين افغان فرهنګي ټولنې له خوا.
څلورم ځل پر ۱۳۷۲ په ۹۶ مخونو کې د ع. څاروان په زيار
پينځم ځل د دريم چاپ له مخې په غلچکې لاسوهنه، په پېښور کې.
شپږم ځل د ډاکټر رحمت ربي خيرکيار په زيار په امريکا کې.
اووم ځل د تاج محل خپروونکي له خوا په يوه کرغېړنه لاسوهنه په پېښور کې.

دننګرهار فرهنګي ټولنې ډېر لوی ارمان و، چې د اروابناد ملنګ جان د دې اوسني سيمينار په وياړ درنو ګډونوالو ته د ملنګ جان خوږې نغمې په نوې بڼه وړاندې کړي، خو دوه ستر خنډونه مو مخې ته وو چې:
لومړی: تنګلاسي او بېوسي.
دويم: د دريم چاپ چې تر ټولو بشپړ دی، له مخې د خپرنې اجازې نه درلودنه.

له نېکه مرغه د ملنګ جان د څلوېښتم تلين په ياد سيمينار ته د راغليو او را رسېدليو پيغامونو په ترڅ کې د پښتو ادب او ژبپوهنې نوماند استاد او د علامه سيد جمال الدين افغان فرهنګي ټولنې مشر پوهاند ډاکټر مجاور احمد زيار د انګلستان له اکسفورډ نه په خپل رالېږلي پيغام کې زموږ دا دويمه اندېښنه او خرخښنه په خپله لورونه لرې کړه او راته وې ليکل:

زموږ نيمه جلاوطنه فرهنګي ټولنه ددې ترڅنګ چې له ننګرهار فرهنګي ټولنې سره (دملنګ جان دڅلوېښتم تلين د نمانځې) په دغه وياړ کې ځان ګډ وي. د خدای بښلي شاعر د تلپاتې "خوږو نغمو" د چاپ او خپرونې حقوق هم ورسپاري، چې له مالي توان سره سمې يې له نويو رابرسېرزونو سره يو ځل بيا چاپ او خپرې کړي.

موږ له درانه استاد او علامه سید جمال الدین افغان فرهنگي ټولنې نه په مننه دا ژمنه کوو، چې که دا خندونه مو له مخې لرې کړای شول، نو دا نغمې به ارو مرو د سندریز ذوق د خاوندانو غوږونو ته رسوو، خو سمدلاسه مو ایله همدومره وکړای شول، چې د عصمت الله (ع. څاروان) د کورني لوّر له مخې د همدې "خوږې نغمې" غورچانې چې "د ملنګ جان غوره شعرونه" نومېږي، د خپلو فرهنګ مینو او د ادب د مینه والو دوستانو په مالي ملاتړ د اروانښاد ملنګ جان د څلوېښتم تلین د سیمینار درنو ګډونوالو او خپلو هنري دوستانو مخې ته کېږدو.

ننګرهار فرهنګي ټولنه په داسې ترڅ کې چې د خپلو ملاتړو غږونه غږونه ښه مني، له درنو فرهنګ دوستانو نه هیله منه ده چې د خوږو نغمو د بشپړونې لپاره له موږ سره لاس کړي او که ور سره د خوږو نغمو څه ناچاپه بیلکې وي، له موږ نه ونه سپموي.

په پای کې د دانش کتابپلورنځي له څښتن او ځوان فرهنګپال ښاغلي اسد الله ساپي هم مننه کوو، چې په نیمه خوله یې زموږ دا لویه هیله ومنله. د ملنګ جان د دې هیلې

که خدای کاندي نن سبا به ورغېږي
ملنګ جانه ستا د زړه ناسور زخمونه

په هیله

په خدای سپارلې

محمد اصف صمیم

د ننګرهار د فرهنګي ټولنې مشر

# څه ملامت دي

مشران چې ګونډيار شي نو کشران څه ملامت دي
سپين ږيري چې نا اهل شي هلکان څه ملامت دي
د پوهو عالمانو په منځو کې چې نفاق وي
ناپوهه بې سواده شوده‌ګان څه ملامت دي
چې زړه د ناصحانو وي ډك شوی له حسد نه
وينا کې تاثير نه وي سامعان څه ملامت دي
کوښښ چې يو پښتون د بل پښتون د بري نه کا
په دې کار کې پردي او ګاونډيان څه ملامت دي
بينا خلك چې مخ شي د نفاق په ګړنګونو
ګيله وکړم له چا نه حافظان څه ملامت دي
ريښتيني پښتانه لوی خادمان او سليم زړونه
دا ټول چې يو شان نه وي ملنګان څه ملامت دي
ريښتيا وينا دې وکړه خدای دې خير کړي ملنګ جانه
که هر څه درته پيښ شوو ستا ياران څه ملامت دي ؟

* * *

# تو لعنت په هغه چا شه

تو لعنت په هغه چا شه چې په قام سوداګري کا
د پنځو پیسو د پاره د اغیارو نوکري کا

بلـه نشته هسي لویـه مرتبه له آزادۍ نه
چې مې واك د بل په لاس وي په دې څه که افسري کا

خدایه هسی زوی لوی مه کړې د پښتون په کورنۍ کې
چې له ننګه بې خبر وي او دښمن پرې باداري کا

هغه سر به بختور وي چې د قام مخکې شي خاورې
ځکه کام یې پس لـه مرګه په مزارجمع اوري کا

قربانیږه ملنګ جانـه د هغو خلکو لـه زړونـه
چې د قام له مینې ډك وي د هیواد خپل غمخوري کا

# چې بې ننګ او بې پښتو وي

چې بې ننګ او بې پښتو وي پښتون نـه دی
چې د قوم په شرمیدو وي پښتون نـه دی
پښتون هغه دی چې غم د تمام قوم خوري
چې د ځان په جګیدو وي پښتون نـه دی
د پښتون نظر مدام په ننګ و نام وي
چې نـظر یې پـه پیسو وي پښتون نـه دی
پښتون هر کلـه طالب د خپل شرف دی
چې طالب د سپینو سرو وي پښتونه نه دی
پښتون تل په خپله ژبه ټینګ ولاړ وي
چې په دروغ یې ګفتګو وي پښتون نه دی
پښتون نـه شي بـاداري د چـا منلـی
چې اختیار یې د پردو وي پښتون نه دی
په نصیب د ملنګ جان دغه مسرې شوې
چې خپه په دې مسرو وي پښتون نه دی

## هغه څوک چې وي پښتون ...

هغه څوک چې وي پښتون دورنګي نه کا
حقیقت دی باز د زاغ همرنګي نه کا
که اوبو په ځای شوده ، د غوښې کوچ خوري
خسکي چرګ به ځان چرګ کولنګی نه کا
چې دننګ تی یې رودلی وي له موره
هغه زوی به هیڅ کله بې ننګي نه کا
که په سر یې د رڼو تورو باران وي
هغه زړه چې د پښتون وي تنګي نه کا
ملنګ جان د آزادۍ د لار ملنګ دی
د ریا له پاره هیڅ ملنګي نه کا

# وطن جوړوو

موږ پښتانه يو سازو باز د خپل وطن جوړوو
کلي په کلي کور په کور ښکلی گلشن جوړوو

دغه وطن موږ ته د پلار نيکه ميراث پاتې دی
سرونه خپل پرې ورکوو ترې نه چمن جوړوو

دغه وطن زموږ او ستاسي معشوقه ده وروڼو
راځئ چې خپله معشوقه ښه په فيشن جوړوو

موږ يو زلميان د پښتنو دا اتفاق دی زموږ
خپل د وطن په نام ونګ خاورې خپل تن جوړوو

هغه دښمن چې کوږ نظر کوي زموږ هيواد ته
توټې توټې زرې زرې هغه دښمن جوړوو

زه ملنګ جان که قرباني شومه په لار د وطن
يمه خوشحال ځان ته د سرو زرو کفن جوړوو

# ملنګ شم

زه چې راخلمه کچکول او ستا ملنګ شم
نو هغه ساعت به تیر تر نام و ننګ شم
نام و ننګ به وي هغه ځای را نه پاتې
په کوم ځای کې چې زه ستا په تومت رنګ شم
پروا نشته که دنیا را پورې خاندي
ماشوم نه یم چې نور وخاندې زه تنګ شم
ستا په عشق کې که ستي شمه په اور کې
فخر کاندم که زه یاد لکه پتنګ شم
ما چې عزم ستا د سپین رخسار دی کړی
وا به نه وړم که په وینو کې رنګ رنګ شم
په شا تلل د میړنیو بدنامي ده
اوس به زه ملنګ جان څرنګه په شنګ شم

# نه پوهېږم

نـه پوهېږم چې زه یار یم که اغیار یم
پـه عـالـم کې لیونی یم کـه هوښیار یم
کـه هـزار د صداقت بنیاد قـایم کـړم
پـه میدان د نمایش کې خـیانتـکار یم
نـه د چا ځنې څه غواړم نـه څـه وایم
بر نـاحـق د .بو او بـل زیـر فشار یم
کـه څوک ما نیسي پـه رسم او پـه رواج کې
زه له عشقه هومره کله لا. وزګار یم
خدای د مینې په ریاست کې ملازم کړم
کار تقدیر کړي نو زه څله ګنهګار یم
د تقدیر په رسۍ بند زه ملنګ جان یم
نه مجنون ، نه لیوني او نه باد سار یم

# یار گرم نه دی

ما په خپله ځان سیزلي یار گرم نه دی
په خپل لاس مې زړه بایللی یار گرم نه دی
ما چې زړه په خپل لاس ورکړ خپل حبیب ته
که یې ساتلی که یې داغلی یار گرم نه دی
د عاشق زړه د معشوق د لاس منه ده
که یې بوی کړي که خوړلې یار گرم نه دی
هر عاشق د معشوقو د در غلام وي
که یې شړلی که یې بللی یار گرم نه دی
لکه مار هسي په ما یې گوزار وکړ
ما په خپله مار ساتلی یار گرم نه دی
یار گرم نه دی یار گرم نه دی ملنګ جانه
چې تا نه وُ پیژندلی یار گرم نه دی

# ما ژړل

ته د ناز په خوب ویده وې ما ژړل
ته بې غمه آسوده وې ما ژړل
ستا د مخ او د سپوږمۍ مقابله وه
ته په مخ تري آزموده وې ما ژړل
ستا د زلفو خوشبويي چور ليونی کړم
ته په عطرو کې لمده وې ما ژړل
ما درخواست د يوې خولې درځنې وکړ
را ته ښکاري آزرده وې ما ژړل
وچ بالنبت زما په اوښکو باندې لوند شو
ته په ناز کې پرورده وې ما ژړل
دازما ملنګ جان برخه کړيدل دي
ته له نازه پرخنده وې ما ژړل

# ورځ می شوه

ورځ مې شوه په انتظار شپه په سودا
ورځ کې هغه ژړوي مې شپه کې دا
لږ خو وخت د کراري زما معلوم کړه
دا خو نه کيږي چې تل تر تل ژړا
ستا په خوښه که ژړيږم باري خير دی
مګر نه د رقيبانو په سلا
ستا په در کې چې غماز تورمخ ښکاره شي
لکه څوک چې په مسجد ويني ترسا
ستا په سر باندې ما کوز او کلی پريښود
د مجنون په شاني ګرځم په صحرا
ستا په سر باندې ما ټول اقربا پريښول
په کم بخته ماوزه ته د اقربا
ياره زه ملنګ جان ستا مينې احتياج کړم
ګنهه ما کله احتياج کلوه د چا

# که په حال زما

که په حال زما خبر تمان جهان شي
ټول عالم به په فریاداو په سوران شي
لکه زه چې داسې زیړ زیبنبلی کرځم
هر بشر به داسې زیړ لکه زعفران شي
زه رټلی معشوقو یم نه رغیږم
که عالم راته د خیرمې حکیمان شي
که څوك ما منع کوي د یار له دره
د ماهي په وچې څه رنګه ګذران شي
تسلي زما د بسوي زړګي داده
یو ځل کله به ښکاره د یار چشمان شي
د یار مخ ته منتظر زه ملنګ جان یم
چې زما د خوږ زړګي پورې درمان شي

* - رژل = رژول

# زړه مې غواړي

زړه مې غواړي د ګلونو په ګلشن کې
لاس دې نه وي د اغیار د یار لمن کې
په سرو وینو مې د پلار سره سره ګلونه
رژل* کیږي نن په پښو د زاغ زغنکې
دا اثر د بې ننګۍ نـه دی نو څه دی
چې کور وال مې شي پردي د پلار مسکن کې
چې ښکاره یې درتـه ووایم پښتونـه
لـه دې ژونده پیچیده ښه یې کفن کې
تاسي راشئ ما قـانع کړئ منصفانو !
که خلاف د ملنګ جانٌ وي په سخن کې

## ځواني سنځې ...

ځواني سنځې تــه چې ونه وايې ترور
هغه دم به دې برباد کړي پلار او مور
هر سبا به دروازه کې درته ناست وي
چې وانـه خلې نـاديده سړي نه پور
بې ګناه وهل بـه خوري آزار به يې ستا وي
که دې ورکړه په بدل کې لور او خور
کيناستی د هغو وکړه ملنګ جانــه
بچې دې سم وي په کنډه ور سره زور

# څه غواړم ؟

زه په دنیا کې د دنیا نه عدالت غواړمه
زوی د انسان یم په ریښتیا انسانیت غواړمه

د خدای د پاره وکړئ غور مسلمان پښتون یم
کلك با ایمان پښتون یم

دا گناه نه ده چې خپل ملك او شریعت غواړمه
زوی د انسان یم په ریښتیا انسانیت غواړمه

د بل بارونه په دنیا کې خو ډنگر چلوي
نه چې بشر چلوي

زه څاروی نه یم پردو پیټو نه نفرت غواړمه
زوی د انسان یم په ریښتیا انسانیت غواړمه

ځمکه د خدای ده په کې برخه هر یو قام لري
هر څوك خپل سام لري

له ما يې بل څوك ولې واخلي حقيقت غواړمه
زوی د انسان يم پـه ریښتیا انسانیت غواړمه

همت لرم بې همت نـه یم خـو نزاع نه غواړم
شور په دنیا نه غواړم

جـګړه نـه غواړم پـه دنیا کې امنیت غواړمه
زوی د انسان یم په ریښتیا انسانیت غواړمه

زلمیانـو واورئ فـریادونـه د دردمن ملنك جان
د لـوغـړن ملنك جان

پښتنو تـاسو نـه یـوالی او وحـدت غواړمه
زوی د انسان یم په ریښتیا انسانیت غواړمه

* * *

# نوی موسم نوی بهار دی

نوی موسم نوی بهار دی
سینې مې وسپړل گلونه
را نه جدا د مینې یار دی
ځکه مې ځي په مخ رودونه

دا لباسي زلمي به څه کړم
چې ډول یې وي غیرت یې نه وي
خپل پیغلتوب به پرې ورنه کړم
چې ډول یې وي غیرت یې نه وي
تن مې هغه زلمي نه ځار دی
چې کړي وطن ته خدمتونه

کږې شملې دي ډیرې ډیرې
په چا مې سترگې نه خوږېږي
زما د زړه لالی دی چیرې
په چا مې سترگې نه خوږېږي
په کنډو ناست را ته اغیار دی
ورو ورو کوي اشارتونه

سبا اتبار دی ورله ځمه
د شهیدانو په مزار کې
غنچه د ګلو پرې شینډمه
د شهیدانو په مزار کې
ددوی زیارت ما ته په کار دی
دوی په وطن ایښي سرونه

د غم سرود را ته غزېږي
زه ملنګ جان غم له پیدا یم
د غم سندري نه خلاصیږي
زه ملنګ جان غم له پیدایم
زلمیانو لږ همت په کار دی
تنګ کړو د ښځو پیغورونه

# زما ځواني ډول کوي

زما ځواني ډول کوي او پښتونواله سره
زه په پښتو او پښتونوالي باندې سر ورکوم

زما بې ختمه لمده کړې د غیرت په اوبو
بې همتي لازمه نه ده زما له شانه سره
د وطن مینه مې رودلې ده د مور په شودو
اوس یې خدمت ته یم حاظر له ټینګ ایمانه سره
د غیرت توره مې نیولې ده په خپلو اوږو
د سربازي میدان له ورم توره له ځانه سره
روح مې په تن کې آسوده وي استقلاله سره
زما ځواني ډول کوي او پښتونواله سره
پـه ژوندانه کې چاته کله خپل سنګر ورکوم
زه په پښتو او پښتونوالي باندې سر ورکوم
په وینو رنګ وژلی خوښ یم خو غلام به نه شم
زما ارواح په ابتدا کې دا منلي نه دی
زه د وطن دښمن ته هیڅ لاس په سلام به نه شم
زما نیکونو هر ګزتیت چا ته کتلي نه دي
خپلو حقوقو د غوښتو ځنې آرام به نه شم
څو چې د تن وینې مې لاندې څڅیدلي نه وي

مقابلې ته یم حاظر له سروماله سره
زما ځواني ډول کوي او پښتونواله سره
ټولې دنیا ته زه په ټینګ عزم خبر ورکوم
زه په پښتو او پښتونوالې باندې سر ورکوم
توپ طیاره زما همت ته اهمیت نه لري
خلك دغه چې یادوي ما ته خندا راځي
سنګر د نورو زما عزم ته طاقت نه لري
هر یو غلیم مې په نظر لکه ګیا راځي
توپ او ټانکونه زما مخې ته قوت نه لري
نه په ټوپکو ماشینګنو څه پروا راځي
د قربانۍ میدان ته ځم زه په ټکاله سره
زما ځواني ډول کوي او پښتونواله سره
خپله سینه د ننګ میدان کې لکه سپر ورکوم
زه په پښتو او پښتونوالې باندې سر ورکوم
ټولې ملا جنګ ته اته ملیون زلمیان لرمه
هر یو زلمی زما د یو لښکر ځواب کوي
دولس میلیونه شاته نور غم شریکان لرمه
غلیم دې خوارشي چې زما مخ کې دباب کوي
ښه اهل کار ښه غمخواران او پوه مشران لرمه
هغه به غوره کړم چې دوی را ته خطاب کوي
غلیمه کور دي نژدې مه کړه له زواله سره
زما ځواني ډول کوي او پښتونواله سره
پر ځای د ډال تیغ د دښمن له خپل ټټر ورکوم
زه په پښتو او پښتونوالې باندې سر ورکوم

که د صورت وینې مې توی شي په خدمت د وطن

دا به دنیا کې یو لوړ نوم او سعادت وي زما

قربان قربان مې دا ځواني شه زرکرت له وطن

خو د وطن دا استقلال دې تر قیامت وي زما

خدایه نصیب مې کړې ښه ښکلی شهادت د وطن

خپلو نیکو ته چې په گور کې مسرت وي زما

زه ملنگ جان به هله سیال شمه له سیاله سره

زما ځواني ډول کوي او پښتونواله سره

مبارکي بـه خپل پردي ته په بستر ورکوم

زه په پښتو او پښتونوالې باندې سر ورکوم

# پښتون زوی د بابا یم

پښتون زوی د بابا یم ولاړیم په میدان
مضبوطه ملا تړلې
په لاره د قومیت کې به خپل ځان کړمه قربان
ما سر په لاس نیولی

په لاره د قومیت کې یمه تیر تر مال وسر
دا رسم د پښتون دی
په دغه لار که مړشم دغه مرگ گنم بهتر
آزاد زموږ ژوندون دی
تمام پښتانه یو دي که په سمه دي که غر
پخوا نه دا تړون دی
وطن زموږ ناموس دی په ناموس وژنو خپل ځان
ما ځان په مرگ شمیرلی

ما سر په لاس نیولی د خپل قام نه به يې نثار کړم
د قام د سر خیرات یم


PROPERTY OF
ACKU
6995

په نم د خپلو وینو به دا خپل وطن ګلزار کړم
یو موتی د زکات یم
بد خوا د خپل ملت به په بلا کې ګرفتار کړم
له تندر ځنې زیات یم
زما پـه نارینتوب بانـدې قایل دی ټول جهان
اثبات ته رسیدلی

دا زه هغه پښتون یم چې مې کسب شجاعت دی
سپکاره لکه د لمر یم
شربت د آزادۍ بـانـدې بدن زمـا صحت دی
په هر میدان کې بر یم
زمـا مقابلې تـه بیا د چـا وس او طاقت دی
مضبوط پولادي غر یم
زما د توري برېښ چې چا لیدلی په چشمان
په خپله یې ځان سیزلی

هست شوی او لوی شوی یم په دار کې د اسلام
په شرعه برابر یم
نه ځم د بل قانون پسې نه یم د بل غلام
د پلار نیکه پسریم
آئینه دې مخ ته ونیسه لږ ځان ته وکړه پام
له اصله دې خبر یم
د بل لاس باندې زور شوې غولوې مسلمانان
استاد مې ستا لیدلی

اسونه نال کیدل چیندخ ته ودریده دا خیال
نالبنده ما هم نال که
نالبند ورته ویل ته د اس نه یې سیال
کم بخته ځان سمبال که
که ښوك بې تجربې وي د چیندخې په مثال
ضرور به ځان پایمال که
آخر به په تبې ورله مخ تور کړي ملنگ جان
دا خوب یې دی لیدلی

# د زړه افسوس

نن زړګی مې د افسوس په اور سوځیږي ۱
چې ګیدړ کوي زمري باندې ګواښونه
د کارغه سترګې د بازه نه شرمیږي
په همت سره را پورته شه پښتونه

نن زړګی زما ددې غمه کباب دی
چې سرحد د پښتنو یې کړ بمبار
دا په کوم دین و مذهب په کوم کتاب دی
بې ګناه مرګونـه وشول وار په وار
دا پښتون ولې بې غم تللی په خواب دی
نن پـه یو سبا پـه بل ذی دغه کار
ظالمان د خپله ظلمه تـه درېږي
چې تر څو ور باندې تاو نه شي غوږونه

پښتنو ورونو راځئ ځای د غیرت دی
ملامو وترئ کار واخلئ له یوالې
باقي ژوند زموږ دنیا کې خجالت دی
چې پردې په پښتنو کوي ناخوالې

غم او درد زموږ شریک دی تر قیامته
خدای دې نه راوړي پښتون کې جدا والې
پښتانه سره تول یو وجود یادیږي
په هنرمو غوڅوي خلك اندامونه

په فریب د فریبکارو مه غولیږئ
زمانه کې دي ډیر شوي غداران
د پردي جغ لاندې تیت سر مه ګرځیږئ
یا خو نوم د پښتون مه پریږدئ په ځان
حیا وکړئ خدای رسول نه وشرمیږئ
خدای لیږلی شریعت دی هم قرآن
چې قانون د بیګانه باندې چلیږي
غواړي ورکړي پښتنو له رشوتونه

پښتنو ته رب ورکړی لوی همت دی
په میدان کې چا ته تیت نه شي کتلی
سرباز لوړ همت زموږ عادت دی
دا تعلیم موږ په طفلۍ کې دی موندلی
چې دې خاورې ته چا سپك کړی نسبت دی
سور په وینو له میدانه تښتیدلی

هر پښتون لکه خوني زمری غوریږي
نه غولیږي د مکارو په مکرونه

چې لوی شوی وي د بل په نوکرۍ کې
د پښتـون سره دې نـه سموي ځان
چې تر اوسه يې موږ شکي بو په پيرۍ کې
دوی خو ګرځي ځان ته نيسي مريدان
عاقبت به ګرفتار شي په خوارۍ کې،
پښتانه به ورمعلوم کړي خپل ايمان
خو زما ملنګ جان زړه کې نه ځائيږي
چې کارغه اخلي د زرکي قدمونه

# تینګ اوسئ زلمیانو ...

تینګ اوسئ ، زلمیانو د وطن له نام ونتګ سره
ګورئ هرې خواتـه چې حالت د دنیا نـور دی
* * *

تینګ اوسئ زلمیانو په خپل دین او په اسلام
تـوره د پښتون پـه برخه شوې له ازله
موږ اور تاسې واړه پښتانه یاستو په قام
پام کوئ چې نه شو خارجیانو ته خجله
ټول په اتفاق دښمن نه واخلئ انتقام
داغ د دورنګی یارانو وباسئ لـه دلـه
زیب کوي پښتون په هر میدان د توري شرنګ سره
تینګ اوسئ زلمیانو د وطن لـه نـام وننګ سره
خپلو کې ګونډئ یارانو موږ لره پغور دی
ګورئ هرې خواتـه چې حالت د دنیا نور دی
خپلو کې ګونډیه یارانو موږ دپاره زهر دی
څکـه هر طرف مـو دښمنان دي لکه غرونه
موږ لره ګونډي او بغض هغو سره په کار دی
ولـې پـه خپل کور به ماتوو خپل مروندونه
وګورئ دنیا ته څه بې رسم څه روزګار دی
اخلي د خپل علم نه رقم رقم خوندونه

مینه کې ځانونه برابر کړئ د پتنګ سره
ټینګ اوسئ زلمیانو د وطن له نام وننګ سره

حق د خپل وطن زموږ په سر لکه د پور دی
ګورئ هرې خواته چې حالت د دنیا نور دی

حق د خپل وطن په ژوندانه باندې ادا کړئ
نیك نومونه پریږدئ په دنیا کې تر قیامت

دې شریفې خاورې نه ځانونه خپل فدا کړئ
اورې په ناراست سرې همیش د خدای لعنت

توره د غیرت یارانو ټینګه کړئ له څنګ سره
ټینګ اوسئ زلمیانو د وطن له نام وننګ سره

نوم د ننګ غیرت زموږ هر طرف ته تللی دی
رب دې دا نیك نوم زموږ بدل نه کړي بل شان

وګورئ نن هر دولت ته کوم ځای ته ختلی دی
موږ لکه واړه لا هیڅ خبر نه یو په ځان

زړه مې د شیرین وطن په مینه داغیدلی دی
خدایه ته حافظ اوسې د ټول افغانستان

سوال د ملنګ جان ستا په درګاه درنګ په درنګ سره
ټینګ اوسئ زلمیانو د وطن په نام وننګ سره

دا فریاد په هر میدان زما په هر پو ورور دی
ګورئ هرې خواته چې حالت د دنیا نور دی

# پښتون یم د پښتو په لار ...

پښتون یم د پښتو په لاره تل مدام جنګیږم
هیڅ نه یمه نیمګړی
چې هر کله مریض شم په جنګونو کې رغیږم
تشخیص مې د ځان کړی

له موره چې پیدا شوم زما سر ته یې کېښوه توره
چې دا کار به کوې ته
دادا مې را ته وویل زما د سترګو توره
وطن به دې ساتې ته
چې بیرته پاتې نه شې په میدانه‌کې له تربوره
په مخ کې به ورځې ته
ابۍ مې را ته وې به بې ننګۍ دې خپه کیږم
ما ننګ ته یې راوړی .

چې غږ د سربازۍ واورمه وینه مې په جوش شي
پاڅم په خلاصه تنده

چې شرنګ د تورې واورم هر سرود مې فراموش شي
ورځم په منډه منډه
دښمن چې را ته وګوري له ویره نه بې هوش شي
بیا ژاړي لکه کونډه
که دیو قدر ته غټ وي پاس په ځټ یې ور سوریږم
په یو ګوزار مې وړی

په درغو لاپې نه کوم ښکاره یم لکه لمر
دنیا کې لور په لور
دښمن باندې چې غږ کړمه د الله اکبر
د ځانه اخلي اور
ولجو کې مې راوړی له غلیمه ځنې سر
ښکاره دی زما زور
په منځ کې د ایشیا د قهرمان په نوم یادیږم
هر وخت مې بری وړی

یو ځل چې قیامت تیرشي خلك پاځي له قبرو نه
بیا یې څوك نه شي وژلی
زه تیر یمه د شلو قیامتونو له جندرو نه
له قبره یم وتلی
پوره حساب مې ورکړ را بهر شوم له یارو نه
ماخپل اجل خوړلی
صادق په خپل اقرار زه ملنګ جان صفا غږیږم
چې وایې وري وګړي

# د افسوس اوښکې مې څې

د افسوس اوښکې مې څي لکه رودونه
دم په دم مې د خولې خیژي فریادونه
میراثه د پلار نیکه مې لاندې کیږي
ظالمان زما په حق نه قانع کیږي

د افسوس اوښکې مې څي لکه باران
په ژوندون مې میراث بولي دښمنان
په حساب سره زه ۱ ته‌ملیونه کور یم
هسې نه چې په دنیا کې زه کمزور یم
مگر دا چې غوره کړی مې دی صبر
نه ظالم یم نه په چا کومه جبر
عاقبت به مې د صبر کنډول مات شي
په دنیا به بیا بل اور د فساد شي
زه طالب د خپل حقوق او استقلال یم
آزادۍ په نامه تیر تر سرومال یم

یا به خاورې په دې لار کې خپل زلمیان کړم
یا به جوړ په خپل همت پښتونستان کړم
ظالمانو کړم بیزار زه له ژوندونه
د افسوس اوښکې مې څي لکه رودونه
سپک وضعیت د پښتانه کله خوښیږي
ظالمان زما په حق نه قانع کیږي

زه لوی شوی یم آزاد ، آزادو غرو کې
آزادي مې ځای نیولی دی مغزو کې
خوشحاله په دنیا کې تجربه یم
امتحان مې دی ورکړی آزموده یم
هغه چا چې زما توره ده لیدلې
د ناکامه یې په خپله ځان سیځلی
بیا به هم ورکړم دنیا ته امتحان
خدای راکړی د زمرو په شان زلمیان
ما په خوارو سترګو مه ګوره دښمنه
خپل عیبونو ته نظر وکړه عیب جنه
تا سره که طلسمونه د فرنګ دي
ما سره هم خزانې د نام وننګ دي
ما رد کړي د ګرزونو ګزارونه
د افسوس اوښکې مې څي لکه رودونه
پخه خښته په باران کله رژیږي
ظالمان زما په حق نه قانع کیږي

زه پښتون یم پښتنې یم زړوړلی
د پښتو په کارو بار یم پوهیدلی
ما ته شوی په طفلۍ کې دا وصیت دی
پلار نیکه را ته تیر کړی حقیقت دی
له خیبره تر اټکه مې وطن دی
وطن څه چې خاص زما د پلار مسکن دی

یا به دا وي چې به وینه پرې توده کړم
یا به ځای د پلار نیکه په فرموده کړم
یا به سرومال په دغه لار خیرات کړم
یا وطن د پلار نیکه به مې آزاد کړم
زه خو نه شم باداري د چا منلی
نه قیامت کې شم نیکونوته کتلی
داچې کیږي پښتنو باندې ظلمونه
د افسوس اوښکې مې ځي لکه رودونه
دا نو کله زموږ زړونو کې ځائیږي
ظالمان زما په حق نه قانع کیږي

حال احوال د شاوخوا چې را برسیر شو
کربلا او یزید دواړه را نه هیر شو
خدایه دا څنګه اسلام څنګه امت دی
ماشومان تور سرې وژني دا حالت دی
هغه څوک چې په ریښتیا د پښتون زوی وي
او ریښتیا د پښتنې په غیږ کې لوی وي

خوب خندا به کړي په ځان پورې حرام
څو وانخلي له غليمه انتقام

خوزماملنګ جان دا سوې مسرې دي
مسرې څه چې ټول د غم سوې نارې دي

حقیقت کې نه چاربیته نه غزل دی
محض غم د خپل وطن را سره مل دی

دغه غم مې په زړګي ایښي داغونه
د افسوس اوښکې مې څې لکه رودونه

په ملهم د خپلواکۍ به ورغیږي
ظالمان زما په حق نه قانع کیږي

# زما سلام

زما سلام دی پـه هغو چې سخت په ځان تیروي
د قام له پاره تکلیفونه د زندان تیروي

زما سلام دی په همه خدمت گاران د وطن
چې محبت سره جیلو کې دي بندیان د وطن
دوی خپل سرونه دي په ویاړ کړي قربان د وطن
د آزادۍ په مینه چې جیلخانې ته ځینه د وطن پت ساتینه
دغه کسان د خدای په فضل به ایمان ساتینه
چې قام له پاره تکلیفونه د زندان تېروي

چې د وطن د پاره ډیر غټ تکلیفونه باسي
د آزادۍ په لاره جیل کې زحمتونـه باسي
د قام عزت غواړي په خپل ځان تاوانونه باسي
دا لیډران د پښتون فداکاران د پښتون خدمت گاران د پښتون
وروستنی نسل به ددوی ښنگه احسان هیروي
چې قام له پاره تکلیفونه د زندان تیروي
ښوك چې خپل ځان بولی پښتون له مرگه نه ډاریږي
لکه د ډمې د پردو پیسو ته نه دریږي

که سر بې ولاړشي آزادۍ ځنې هيڅ نه تيريږي
که غيرت من پښتون وي په زړه درمن پښتون وي په قام مين پښتون وي
هغه نوکله د بل لاس لاندې گزران تيروي.
چې قام له پاره تکليفونه د زندان تيروي

د خدای د پاره وروڼو ټول شئ ځان ځاني مه کوئ
زړونه مو يو کړئ سره يو شئ ناداني مه کوئ
وکړئ پوښتنه د بنديانو نا ځواني مه کوئ
خپل لياقت وگټئ خپل شرافت وگټئ د قام عزت وگټئ
تر څو به اوښکې له ډير درده ملنگ جان تويوي
د قام له پاره تکليفونه په خپل ځان تيروي

# په افسوس افسوس

په افسوس افسوس مې دواړه سترګې سرې شوې
چې نظر مې شو روزګار ددې دنيا ته
له ډير غمه مې پر مخ اوښکې خورې شوې
خدايه ما پښتانه ټول سپارلي تا ته

د افسوس نارې وهم په زوره زوره
پښتانه په خوب ويده دي نه پاڅيږي
زوی د پلار په لاره نه ځي ورور د وروره
هر سړی د ځان په ګټه خوشحاليږي
حقيقت کې يو پيدا له يوې موره
دا وطن دی زموږ مور که څوک پوهيږي
ددې حق موږ نه تلف خاورې ايرې شو
ځکه لاس د محتاجۍ نيسو بل چا ته
ای پښتونه دې دنيا ته لږ نظر کړه
د مرغانو په شان ګرځي په اسمان
ته هم نر شه سر و مال په دې لار ورکړه
نارينه شه هر ځای وګټه ميدان
د شيرشاه او د ميرويس نه ځان خبر کړه
تاريخ بيرته کړه او وګوره داستان

## پلارګنلی زوی تـه توکې مسخرې شوې
## دا متـل استعمالیـږي مـا وتـاتـه

په دنیا د پښتنو څومره لوړ نوم وو
چې روان وو د یـوالی پـه یـو لار
په هر ځای یې د بري بیرغ معلوم وُ
احمد شاه بابا دی پریښی لوی یادګار
چې به دوی په کوم طرف وړی هجوم وُ
دښمنان یـې و ترپښو لاتـدې تارتار
نن مې څله د خپل ځان برخې سپیرې شوې
زمـوږ سترګې د امید دي هرې خواته

موجوده پښتانه ولې نه شرمیږي
چې یې پرې ښوه د نیکونو سمه لار
ددې ژوند نه په مرګ ولې نه خوښیږي
چې د بل د لاس جوته خوري لکه زار
چې د بل پیسو ته لاس نیسي ودریږي
په هغه پښتون لعنت شه هزار بار
خو زما ملنګ جان برخه دا سورې شوې
که د خوږ زړګي ملهم راکړي خدای ما ته

# موسم د پسرلي دی

موسم د پسرلي دی ولي زه پرې نه پوهیږم
پر ما باد د طوفان دی
ستم د زمانې له لاسه ورځ په ورځ زیږیږم
په برخه مې خزان دی

موسم د پسرلي دی په وطن بوی د جنت دی
خو زړه چې په کلاړ وي
بې درد به ځي میلو ته په دردمندو جوړ قیامت دی
چې ما غوندې بیمار وي
ختدل د هغه مشره سره څه مناسبت دی
چې قام بې خوار وزار وي
ګلان تول په خندا دي زه له ډیر غمه ژړیږم
په مخ مې رود روان دی

نن جوړ دي په ګلشن کې سرودونه د توتیانو
موسم دی د ګلونو
زما له غوږ نه وځي زګیروي د ماشومانو
چې مړه دي په بمونو

په چا وژاړم خدایه چې زما په عزیزانو
اور بل دی د ظلمونو
خالقه دې دنیا عدل و انصاف ته حیرانیږم
دا څه رنګه جهان دی

نه عدل نه انصاف شته دا د مخې دسیسې دي
مظلوم د پاره چل دی
نه ښه شته نه ښه والی خو د ښو خلکو پیښې دي
چې ښه یې بولې غل دی
ظاهر که سر قندونه منځ یې وګورئ نخرې دي
پټ زهر ښکاره عسل دی
ښه واوره ریاکاره په فریب دې نه غولیږم
په مخ کې دې شیطان دی

را پورته نباتاتو ګړل له خاورو نه سرونه
د ښه ژوند سلسله ده
پرما د استعمار پراته د واورو انبارونه
هم هاغسې څله ده
زما د ژوندانه باغچه ګی‌ړنه نیسي ګلونه
را پیښه کشاله ده
غمجن زه ملنګ جان یم له غمو سره لوبیږم
همدغه مې ګذران دی

# راځئ پښتنو ورونو

راځئ پښتنو ورونو د غه ځای د نام وننګ دی
راغلې نن پر موږ باندې دوره د امتحان
راځئ پښتنو ورونو د پاك زړه په صداقت
ملا وتړئ پـه تینګه را بهر شئ پـه میدان
نور موږ سره ښه نه ښکاري ګوندي او عداوت
د زړونو لاري یو کړئ بس مه اورئ د شیطان
په خوند یې مه غولیږئ زهر به درکړي په شربت
ځانونه به خوازه کړي ورونو ستاسي دښمنان
ظاهر کې سپین میدان او په باطن کې لوی ګړنګ دی
راځئ پښتنو ورونو دغه ځای د نام وننګ دی
ځـانونـه اداره کړئ ګټه وبـه کړئ ارمان
راغلې نن په موږ باندې دوره د امتحان
ځانونه اداره کړئ د غیرتـه توره په ملاکړئ
د زړه له سوزه ووځئ میدان ته په اخلاص
نقصونه مو همه د خپل کالهٔ سره اصلاح کړئ
د خدای د پاره ورونو د نفاق نه واخلئ لاس
د خپل او د پردي فرق سره وکړئ ځان دانا کړئ
ور نه کړئ پښتونواله په پیسو او په لباس

نن ستا د پلار ډنډوکو باندی بې موجبه جنگ دی
راځئ پښتنو وروڼو دغه ځای د نام وننگ دی
دامرگ نه دی نو څه دی چې بې برخې شي افغان
راغلې نن په موږ باندې دوره د امتحان
دا مرگ نه دی نو څه دی چې هندو او سك آزاد شي
پښتون لکه یتیم اوسي د بل د سیوري لاندې
کتلی نوم د پلار او د نیکه به مو برباد شي
که چیرې د پردو حکم جاري شي تاسي باندې
آخر ددوی له خوا به در ته پیښ شدید فساد شي
ماران دي د لستوڼي ځان بې مه پریدئ د وراندې
ظاهر دوی پورې کړی په خپل ځان مذهبي رنگ دی
راځئ پښتنو وروڼو دغه ځای د نام وننگ دی
که بیخ ته یې نظر کړو څوك قادیان څوك کرشتان
راغلې نن په موږ باندې دوره د امتحان
د دوی په فریبو باندې څوك نه شې پښتونه
اولاد به دې اسیر شي په دنیا کې تر قیامته
په دغه لار نیکو مو خاوري کړي دي سرونه
دا خاوره یې موږ او تاسي ته سپارلې امانته
د پاك الله به در کې همیشه کوی سوالونه
چې دغه امانت دي له موږ نه شي خیانته
زما ملنگ جان زړه د آزادی د نور پتنگ دی
راځئ پښتنو وروڼو دغه ځای د نام وننگ دی
پتنگ هله پتنگ شي چې په شمه وریت کړي ځان
راغلې نن په موږ باندې دوره د امتحان

# نن زلمیان د پښتنو تجربه کیږي

نن زلمیان د پښتنو تجربه کیږي
تماشو لــه یې ولاړ دی ټول جهان
دا یادګار به تر قیامته پاته کیږي
میړنیــه دا دې وخت دی د میــدان
* * *
نن زلمیان د پښتنو په جوش راغلي
ګوټي ګوټي لکه مست زمري غورېږي
د همت توري لاسونو کې نیولي
د پتنګ غوندې په سرو لمبو غورځیږي
سمه غر واړه د غیرمې خوځیدلی
سین په خس او په خاشاک کله بندیږي
د هر یو وینه رګونو کې ایشیږي
د ږنـو/ توره به جوړ کاندي باران

یا به ورك د پښتنو نام ونښان شي
یا به جوړ کړي مستقل . افغانستان
بیلول د روح او تن سره ډیر گران شي
آزادي او پښتانـه دي روح او ځانّ
نه به ځمکي ته کوز ستوری د آسمان شي
نـه پښتون بـه د بل چا شي غلامان
هر هم جنس د خپل هم جنس سره جوړيږي
چیرته گل ، چیرته بلبل چیرته زاغان
پښتانه د خپلي خاوري پتنگان دي
پتنگ نـه کـوي د شمې ځنې ځنگ
نـه ویریږي له غلیمه سر بازان دي
خـدای ورکړې خزانـه د نام وننگ
په جگړو کې آزموده پهلوانان دي
مخامخ ځي که کوهی وي یـا گړنگ
دوی نـامـه د آزادۍ نـه قربانیږي
دا دستور دی پـه دنیا کې د افغان
ای پښتونـه پلار نیکه تـه دې نظر کره
دا کیږې جندې پرې چـا دی درولي
ته هم نر شه سرومال په دې لار ورکره
د همت توره دې تینگه کره په ولي
احمد شاه بابا کیسو نه ځان خبر کره
دښمنان یې دي تر کومه زغلولي
خو زما ملنگ جان سترگې نه غړیږي
ادیرې تـه کتی نـه شم پـه هیڅ شان

# وطن به ژاړي

وطن به ژاړي په قيامت زموږ نيکونو ته عرض کوي پلرونو تـه
زه موچا ته وم سپارلى

وطن بـه وژاړي پـه زوره
زموږ نيکونو ته سر توره
تـه د لمسو ظلمونـه گوره

زه يې وم نيولى د وحشت لوى زحمتونو ته عرض کوي پلرونو ته
زه موچاته وم سپارلى

تاسي پـه توره وم گټلى
خپلو لمسو ته وم سپارلى
دوى پـه نفاق وم کـړولى

نظر به يې نه کاوه دا ستاسي لوى نمونو ته عرض کوي پلرونو تـه
زه مو چا تـه وم سپارلى

د هر وطن وي جوړ زينت
د فرزندانو پــه همت
دوی پـه ما نـه کاوه غيرت

د دوی له لاسه وم خجل نورو ملکونو ته عرض کوي پلرونو تــه
زه مو چا ته وم سپارلی

راځئ چې وباسو زحمت
د خپل وطن وکړو خدمت
ځان ته پيدا کړولياقت

چې خجل نه شو په قيامت نورو قامونو ته عرض کوي پلرونـو تـه
زه مو چا ته وم سپارلی

خدايه رانده مـو ټول بينا کړې
هر يوجاهـل زموږ دانا کړې
زموږ ښه نوم خور په دنيا کړې

بيا به ملهم شي ملنګ جان د زړه زخمونه عرض کوي پلرونو تـه
زه مو چا ته وم سپارلی

# نفسونه شول غالب

نفسونه شول غالب ، ددې غمه ژړېږم
بې کاره بې تعلیمه را ته پاتې خپل اولاد شو
پښتون غریب برباد شو

نفسونه مخالف شول ، خیالونه مختلف شول
د کور بغض او حسد موږ لره نه دی مناسب
نفسونه شول غالب
هر څوک گټه د ځان کړي ، وطن به څوک ودان کړي
د قوم مینه د زړونو نه بهر شوه نه پوهیږم
لددې غمه ژړیږم
ملك صاحب دی جوړ وي ، په گیله دې دی موږ وي
د خوار او د غریب پوښتنه نشته څه فساد شو
پښتون غریب برباد شو

سید په خپل سیادت ، د ځان غواړي عزت
قسم دی ما ونه لید د وطن د خیر طالب
نفسونه شول غالب
څوك میا او څوکملا شول ، د کسب نه تېرا شول
وایي کسب و کمال څه کړم شکرانو باندې مړېږم
له دې غمه ژړېږم
نه ننګ شته نه غیرت شته ، نه خاورې ته خدمت شته
نن وګوره دنیا ته هر ملت سر په مراد شو
پښتون غریب برباد شو
ګوندي او عداوت ، په موږ کې شو عادت
دوستي او شفقت په پښتنو کې شو غایب
نفسونه شول غالب
څوك وایي چې زه خان یم ، معروف په کل جهان یم
هستي دولت مې ډیر دي په خلمت باندې شرمېږم
له دې غمه ژړېږم
دا خان نه دی‌خاین دی ، په خپل ځان چې مین دی
هیڅ غم د وطن نه خوري چې یو ځل بې نس آباد شو
پښتون غریب برباد شو
که حق وایم وېرېږم ، که‌نه‌وایم پرسېږم
د ځینو کارکنانو کاروي ور د تعجب
نفسونه شول غالب
په ځای د عدالت ، ما ولید تجارت
له غمه شم ترور یو نیم مامور نه چې خوړېږم
له دې غمه ژړېږم

خاونده موږ اصلا کړې ، دنیا کې سر بالا کړې
ډیر غله د خپل کاله دي هر سړی مل د فساد شو
پښتون غریب برباد شو

پښتونه وروره واوره ، نیکونو نه دا خاوره
ده موږ ته سپارل شوې یې غافل په څه سبب
نفسونه شول غالب

ددې خاورې خدمت ، کوئ په صداقت
د کور په ځانځانۍ له باندنو خلکو شرمیږم
له دې غمه ژړیږم

ریښتیا ریښتیا به وایم ، چې څو په دې دنیا یم
مجبور دی ملنګ جان له ډیره غمه په فریاد شو
پښتون غریب برباد شو

# بې غوره ياره

رنګ ته مې ګوره بيا کوه د خولې سوالونه

بې غوره يار ه

* * *

رنګ ته مې ګوره چې زيړيږي

بې غوره ياره

اوښکې مې اورې نـه وچيږي

بې غوره ياره

بې غوره ياره د شهيدانو يتيمانې ژړوينه

* * *

څنګه دې زړه را ته جګيږي

بې غوره ياره

فخر افغان مـو نـه ياديږي

بې غوره ياره

بې غوره ياره ، ستاسو په غم کې جيلخانه جارو کوينه

* * *

که ته پښتون يې بسم الله کړه

پاڅه د ننګ توره تر ملا کړه

بې غوره یاره

بې غوره یاره

بې غوره یاره ، چې پردی مېنځې پیغورونه را کوینه

* * *

که ستا له لاسه پوره نه وي

بې غوره یاره

مور دې په تا هم بوره نه وي

بې غوره یاره

بې غوره یاره ، تیکری مې واخله ماته هم غیرت راځینه

* * *

هرمره به سترګې تورې نه کړم

بې غوره یاره

په ځان به عطر پورې نه کړم

بې غوره یاره

د ملنګ جان تېپې مې خیال ته نه پرېږدینه

# څمکې تور لباس ګوزار کړ

څمکی تور لباس ګوزار کړ
فلك تش شو ستارو نه
په تمام جهان رڼا شوه
زه لار نه ګورم تیارو نه

اننګي مې دواړه شنه دي
د ظالم څپېړې خورمه
څه بې رحمه زمانه شوه
غبږ مې تپ شو د نارو نه

ګناه ګار شوم چې حق غواړم
نن دعدل په دنیا کې
شنه توتیان مې نه خلاصیږي
د سیاد ظالم پنجرو نه

سربازي زما پیشه ده
خلك يې ښځه را ته بښيي
نن سبا به مې خدای خلاص کړي
د نفاق د زنځیرو نه

زه ژوندی یم لا مړ نه يم
خلك مې ولي ميرات بولي
خونړی سیلابه راشه !
پښتونخواد لوړو غرو نه

هر گز وچې نه شوې نم نه
دا زما ملنګ جان سترګې
هره شپه مې راځي خوب ته
شهیدان د ادیرونه

## په ننګ سترګې تورومه

زه مې اوربل کې د وحدت ګلونه ږدمه
په ننګ سترګې تورومه
* * *

مورې لاکې ټیکری مې را کړه
ملی ترون دی
زړه مې د باز په شان هوا که
ملی ترون دی
آزادي خواه زلمیان ورځي ور سره ځمه
په ننګ سترګې تورومه
* * *

تا ته مورچل کې به زه درکړم
شربت د شونډو
که تږی شو ورله به ورکړم
شربت د شونډو
په تورو څنو به یې ګرد لرې کومه
په ننګ سترګې تورومه
* * *

## د شهیدانو بیرغونه

ورو ورو رپیږي

زلمو ته کړي اشارتونه

ورو ورو رپیږي

که زلمي نه وو پیغلې نجونې تولومه

په ننګ سترګې تورومه

* * *

که د زلمو نه پوره نه شوه

ستر به مات کړم

که یې پخه اراده نه شوه

ستر به مات کړم

د پاولو ډکه لمن زه جګړې ته ځمه

په ننګ سترګې تورومه

* * *

راځئ راځئ چې قربانیږو

د پښتو ننګ دی

صبر مې نه شي روانیږو

د پښتو ننګ دی

د ملنګ جان مسرو له صبره وایستمه

په ننګ سترګې تورومه

## غم د پاسه غم دی

غم به کله هیرومه
غم د پاسه غم دی
همزولې لاړلې صحرا ته
زه خواره ناسته
درومې د گلو تماشا ته
زه خواره ناسته
خپل زخمیان شوي یتیمان کرارومه غم د پاسه غم دی

بچیان مې تل په کوکو ژاړي
د چا له ظلمه
خپل بابا جان را خخه غواړي
د چا له ظلمه
پلار یې شهید زه به یې چیرته لټومه غم د پاسه غم دی

په وینو رنگ جامې به یوسم
په پښتونخوا کې
خلیل مومند مخکې به کیدم
په پښتونخواکې
د غم سلگۍ به د زلمی مخکې کومه غم د پاسه غم دی

د باجوړ زلمي به راشي
که پښتانه وي
زموږ په حال به دوی آگاه شي
که پښتانه وي
زه د دوی کونډه یم کونډتون دوی ته کومه غم د پاسه غم دی

میره مې سر په وطن کیښود
زه خوارو زاره
دیر غم یې ما خوارې ته پریښود
زه خواره ناسته
د ملنگ جان په مسرو ویر د ځان کومه غم د پاسه غم دی

# زه په چا ، چا وژاړم خدايه

چې په زخمي خاطر مې کيږدي ملهمونه
رنګ رنګ ظلمونه په ما کيږي          د پلار مزار مې لاندې کيږي
څوک به غمخور شي چې مې واوري فريادونه
دنيا کې هر يو قام آزاد شو          د اسارت هر قيد يې مات شو
زه به تر څو په اوږو وړم د بل بارونه
دنيا کې هر څوک خپل خپل کار کا          آزاد ژوندون آزاد روزګار کا
ما ته پراته دي د زخميانو کتارونه
خلکو کړل جوړ نوي ښارونه          په کې روښانه دي برقونه
په پښتنو باندې وريږي سره اورونه
د پښتونخوا زلميانو تنګ کړئ          د استعمار په کور غورځنګ کړئ
د غم زده ملنګ جان واورئ فريادونه

## د غلامۍ نه سر په دار ښه دی

ژوند په دنیا د اقتدار ښه دی
د غلامۍ نه سر په دار ښه دی
د مال وسر په قیمت چې ساتي خپل ملیت
دغه سودا داسې قمار ښه دی
د غلامۍ نه سر په دار ښه دی
چې ننګ و نام نه لري مینه د قام نه لري
هغه نواب نه یو خرکار ښه دی
د غلامۍ نه سر په دار ښه دی
د آزادۍ په لاره ملی ناموس د پاره
ځوانیمرګی په دغه لار ښه دی
د غلامۍ نه سرپه‌دار ښه دی
د غلامۍ نه توبه د بدنامۍ نه توبه
د خپلواکۍ نه مې سر ځار ښه دی
د غلامۍ نه سر په دار ښه دی

# د پښتني پيغلې او مور
# سوال او ځواب

لور : ادکې مورې د پښتو تنګ دی
کوځو له غوټې ورکوم جګړې له ځمه

مور : بچيه زره دې ولې تنګ دی
تا په ژوندون له ځانه کله بيلومه

لور : مورې رخصت مې کړه چې ځم د زړه په مينه
د اسارت ژوندون مزه نه را کوينه
که شينکی خال مې د چړو په ځوکو ځينه
خو د پردو لاس لاندې شپې نه تيرومه
ادکې مورې ....

مور : ته مستوره يې لورې مه ووځه له کوره
شکر دی ډير پښتانه شته دي لور په لوره
ستا د مراد باغ به آخر کړي خدای سمسوره
اوسه خوشحاله اطمينان زه درکومه
بچيه ....

لور : ستر به مات کړم آزادي د پاره
ځان به شهيد کړم په دغه پاکه لاره

چې مې سبا بې ستره نه کاندي اغياره
زه په خپل مخ د بيگانه خوله نه پرېږدمه

ادکې مورې ....

مور : لورې دا ولې ليونۍ شوې خدای د پاره
ښه ننګيالي زلمي لرې د جنګ دپاره

غټ غټ خانان په قام کې شته دي با وقاره
په دې خانانو اطمينان لورې لرمه

بچيه ...

لور : ځينې خانان خو ما ته مه يادوه مورې
زما وينا ته څه حاجت په خپله يې ګورې

دوی ښه کټل ، شوې پښتنې مجنونه سر تورې
دوی دې وهي خپل چکرونه زه دې مرمه

ادکې مورې ...

مور : لورې چې ته دومره مېنه يې په قام خپل
الله دې تا کاندي کاميابه په مرام خپل

تا په رښتيا دی پيژندلی ننګ وننام خپل
ستا آرزوګانې به زلمو ته پيښ کومه

بچيه ...

لور : موريې زلمو سره ورځم د جنګ میدان ته
زه پښتنه یم تیت کتی نه شم جهان ته
ځان به تسلیمه موريې نه کړم بل انسان ته
د ملالۍ غونديې یادګار درته پریږدمه
ادکې موريې ....

مور : لوريې که تا وربل قربان په دغه لار کړ
د ننګ پیغام دې زما مخ کې اظهار کړ
ځوانیمرګۍ ته دې په ټینګ عزم اختیار کړ
په ملنګ جان به ستا تعریف بیا وئیکمه
بچیه ....

# د پښتون او پښتنې

## سوال او ځواب

- ودې سوم محبوبې ستا د زلفو خريدار يمه
واخله مال و سر زما
زه د وطن لوړ يم د بانتکو زلمو يار يمه
ورك دې كه يشر له ما

- ودې سوم محبوبې خپل وصال باندې مې موړ كه ته
غم مې د زړه سوړ كه ته
پوه نه شوې په نيمه مړه ته د سره سيال نه يې
سيال مې د جمال نه يې
- سيال دې د جمال يم ډير دولت لرمه خان يمه
بريت تاووم ځوان يمه
داسې خان دې ورك شي چې د بل لاس لاندې ژوند كوي
ستا خاني څه خوند كوي ؟
- مه كوه پيغور مستې د سرو به دې زنور كړمه
موړ به دې تيږ كړمه

هغه مال دې ورک شي چې په تيټو يې ګټلي وي
نوم يې پرې بايللی وي
- نه يمه تيټ سترګی پلارنيکه نه غټ پښتون يمه
تا پسې مجنون يمه
پلار خو دې پښتون و لاکن ته په پښتو پوئ نه يې
ته دې د پلار زوی نه يې
- څنګه د پلار زوی نه يم د پلار نه دنيا دار يمه
کوم تربور نه خوار يمه ؟
- ته دنيا پرست يې د خپل پلار غوندې بهادر نه يې
ته د سره نر نه يې
- مه وايه دا سپورې نور د قهره بې اختيار يمه
وريت دې کړ ځيګر زما
- زه له خپله پلاره څه کې کم يم چې پيغور کوې
دومره څله شور کوې ؟
- پلار دې ننګيالی و مړه تا غوندې بې ننګ نه و
هيڅوک يې د جنګ نه و
- ما خو د خپل پلار او د نيکه نه اوړولی دی
ډير مال مې ګټلی دی
- مال پسې دې اور شه مرګه د ننګ ناموس کوم
دې کې زه تپوس کوم
- ښه دی چې تپوس کړې بې ننګي زما ښکاره کړه ته
پوه مې دوباره کړه ته
- دادې بې ننګي ده چې د پلار پښتو ته نه ګورې
د بل پيسو ته ښه ګورې

- زه خو د خپل پلار او د نیکه نه بې همت نه یم
چا ته خجالت نه یم
ژلې نه شرمیږې بې غیرته محه زندان گوره
جیل کې خپل بندیان گوره
رب خو دې ړنده کړه چې دې بې اوره کباب کړمه
څومره دې بې آب کړمه
تا دې خالق ړوند کړي چې ستا وروڼه یې وژل
تا تیټ ورته کتل

مخ دې را نه ورك کړه د یارۍ‌نه دې بیزار یمه
جوړ دې کړ محشر په ما
مخ دې را نه لرې کړه چتې خبرې وایې ته
څومره بې حیا یې ته
~~خپله بې حیا یې تیټ سر ناست یې شرمیدلی~~
کوټې په کونج کې غلی
- زه چې غلی ناست یم نو ستاوروڼوخو وژلي
په کوهورچل ختلي
- وروڼه مې نران دي لکه تاسوښپوسان‌نه دي
د بل چا غلامان نه دي
- څه نرتوب یې کړې چی دا دومره جگ غږیږې ته
موږ پورې خندیږې ته
- سور بیرغ ځلیږي دا د وروڼو مې کمال دی
لاس کې توره ډال دي

- بدې سترګې وخورې چې داځومره بد ویل کوې
محض شرمول کوې
- بدې سترګې ستا دي چې په بدو نه شرمیږې ته
قوم ځنې بیلیږې ته
- زه خو د خپل قوم او قومیت نه نه بیلیږمه
پوه یم نه غولیږمه
- ځنګه نه غولیږې چې ستا قام نن آزادي غواړي
ستا زړه بربادي غواړي
- زه خپلې موقع ته ګورم وخت ته انتظار یمه
وابه ورې خبر زما
زه خپلې موقع ته ګورم نوم به یې درته ورك کړمه
بر ناحق دې سپك کړمه

دادې د همت موقع ده ودرېږه نرشه ته
پاڅیږه بادر شه ته
زه که چیرته نر وم دا پیغور به مې ستا هیر نه شي
هیر به مې تر دیر نه شي
دا پیغور لا څه کړې چې ستا مړو ته پیغور کوي
نور مړي د ګور کوي
زه به د خپل ګور مړی په ګور کې خجالت نه کړم
نور به دا غفلت نه کړم
ته خودې خپل اصل ته نظر وکړه چې څوك یې ته
ولې دومره پوك یې ته

پوك نه يم بس دی نور مې مه شرموه پوی شوم
شمې په شان توی شوم
ښه دی چې ته پوی شوې رب دې ټول پښتانه پوی لري
نوم دې خالق لوی لري
تل دې وي دايم دې وي دا عزم دا همت زموږ
دا ملی وحدت زموږ
زه ملنګ جان سور په وينو خويش په دغه لار يم
ګوربه شي سره زر زما

## شهیده !

ستا په ګولۍ زخمي ټټر نه هم قربان شهیده
ډک له ارمان شهیده
د آزادۍ په لار دې ورکړلو خپل ځان شهیده
ډک له ارمان شهیده

تا چې دا خپله ځواني خاورې کړه د قام له پاره
خپل ننګ او نام له پاره
زه به کونډتون کومه ستا په نامه ګران شهیده
ډک له ارمان شهیده

زه به ښکاره کړم سرې جامې د پیښور زلمو ته
د باجوړزمرو ته
خلیل مومند لره بـه ژاړم په سوران شهیده
ډک له ارمان شهیده

دیر او بونیر لره ورځم هلته زړور خانان دي
ښه منور خانان دي

تا به ګټي که په ریښتیا وي دوی خانان شهیده
ډک له ارمان شهیده

بلوڅ خو هم دي زموږ ورونه په تا ننګ به وکړي
د چړو جنګ به وکړي
یو ځل به وژاړم په ټول بلوچستان شهیده
ډک له ارمان شهیده

کور د پښتون به په ژړا سره زه ولړزوم
پښتون به و دردوم
پښتون بابا لره به وشکوم ګریوان شهیده
ډک له ارمان شهیده

شهیده ستا له شهادته ملنګ جان خبروم
ټول افغانان خبروم
د آزادۍ په لار دې وکړ ځان قربان شهیده
ډک له ارمان شهیده

# نری نری لوگی ترې خیژي

نری نری لوگی ترې خیژي
د استعمار لمبې ملي مانۍ سیزینه

خاونده دا څنګه حالت دی
دا څه انصاف اوعدالت دی
دا څو عجیبه جمهوریت دی
خلك د ژبې ترقۍ ته نه پریدینه

یو خوا تبلیغ داسلامیت کړي
دعوه د حق او حقیقت کړي
دغه خدمت که خیانت کړي
چې د خدای خلکو ته خپل حق نه ورکوینه

ای د دنیا حق پرستانو !
د امنیت طرفدارانو
وګوری حال ددې خوارانو !
څوك ځي جیلو ته څوك د غم سورې وهینه

چې د ټینك عزم خاوندان وي
د خپلې ژبې پتنګان وي
پرې دې سلام د ملنګ جان وي
چې سر و مال د خپل ملت نه ځاروینه

# راځئ پښتنو ورونو...

راځئ پښتنو ورونو چې ملي وحدت تيار کړو
د زړه په صداقت
نيکونونه را پاتې دا وطن گل او گلزار کړو
ښکاره کړو لياقت

نيکونو نه مو پاتې.دا زموږ د مينې کور دی
چې جوړ يې کړو به ښبان
خواره اوبه ترې اخلو په مثال زموږ د مور دی
يو موږ يې فرزندان

دده آبادول زموږ په سر لکه يو پور دی
له پوره خلاص کړو ځان
پنځه وخته زحمت په صداقت سره رويکار کړو
نور مه منئ ذلت

پنځه ورځې زحمت سره محبوب وطن آباد کړو
زينت لره د ځان
زنځيرد مجبورۍ ځنې دا خپل گردن آزاد کړو
په علم او په عرفان

ياديږو پښتانه بايد چې خپل همت اثبات کړو
لږ وگورئ جهان
تر څو سود او سودا به د پرديو له بازار کړو
دا ډير دی خجالت

تر څو بهٔ په پیسو غوارو د خلکو نه سامان
د غور په نظر گوره
زموږه ناپوهي پورې خندا کړي خارجيان
زما پښتونه وروره

غیرت او ننگ په کاردی چې یادیږو موږ افغان
چې خلاص شو له پیغوره .
ملا وتړئ په تینگه نو راځئ چې یا چاریار کړو
په لورې د خدمت

ملا وتړئ په تینگه چې وروستي خلك شول وړاندې
را ټول شئ عزيزانو

موږ بیرته شولو پاتې ټول خندا کوي موږ باندې
غیرت وکړئ زمریانو

پښتون دې رب هیڅکله په میدان کې نه کړي لاندې
خیر غواړئ مومنانو
راځئ چې د غمجن ملنگ جان څوله باندې اتبار کړو
که وي په صداقت

# نارې مې په غوږ واورئ...

نارې مې په غوږ واورئ زه وطن د ستاسی مور یم
واړه، مې غیږ کې لوی کړئ اوس له ما نه بې پروا شوئ

نارې مې په غوږ واورئ زه وطن ستاسو زانګو یم
روزونکې مو د جسم دا زما آب وهوا ده
لږ پام را باندې وکړئ هدیره مو د پلرو یم
د هغو له سرو وینو نه رنګینه مې فضا ده
دا خاوره چې مې ګورئ درست هډوکي د نیکو دي
قبضه د نورو خلکو په ما باندې ناروا ده

خوشحال او احمدشاه او د شیرشاه او میرویس ګور یم
نارې مې په غوږ واورئ زه وطن د ستاسو مور یم

زه ستاسو ننګ ناموس یم تاسي ما نه مخ په شا شوئ
واړه مې غیږ کې لوی کړئ اوس له ما نه بې پروا شوئ
زه ستاسو ننګ ناموس یم تاسي مه کوئ غفلت
په ښه ډول ساتلې ومه زه ستاسي نیکونو

ورو ورو مې خوا ته راغلل په امید مې د قربت
اغیار را ته سترګګ وهي ته څه شولي پښتونه
یو لاس یې را نه ونیو کش کوي مې هر ساعت
لازم نه ګڼم دا چې مې په مخ وهي لاسونه

ناموس مې خرابیږي زه د هر پښتون پیغور یم
نارې مې په غوږ واورئ زه وطن د ستاسو مور یم

په لورې مې ګواښیږئ تاسې ولې نه شرمیږئ
هر کله پښتنو په خپله کونډه ځان وژلی
ما وپیژنئ وګورئ په سترګو مه رندیږئ
زه ملك مو د نیکو یمه هغو یمه ګټلی
د هغسې نیکونو اولاده تاسو یادیږئ
چې بریښ یې ؤ د توری شرق و غربه پورې تللی
د هغو د ښمنان نن راته خاندي سوی سکور یم
نارې مې په غوږ واورئ زه وطن د ستاسو مور یم

په داسې ځان ځانۍ سره د خلکو د خندا شوئ
واره مې غیږ کې لوی کړئ اوس له ما نه بې پروا شوئ
په داسې ځان ځانۍ سره دا خپل وطن مو وران کړ
نن ځکه په دنیا کې تیروئ مصیبتونه
کم* پوري د عرفان مامیره کله په چشمان کړه
موجود را کې پراته دي رنګا رنګ د سرو کانونه

دښمن په چل ویده کړئ او ځانونه بې ځلان کړه
اوس تاسې جنګوي لکه چرګان په خپل منځونه
نو زه ملنګ جان ځکه هر میدان کې ګډ په شور یم
نارې مې په غوږ واورئ زه وطن د ستاسو مور یم

دا ولې د خپل کور په بربادۍ باندې رضا شوئ
واره مې غیږ کې لوی کړئ اوس له ما نه بې پروا شوئ

# صورت مې اخلي اور

صورت مې اخلي اور
له درده بې اختیار یم
معافي غواړم یارانو که الفاظ مې نا پسند وي
زړه ژاړي چې دردمند وي

که ستاسو اجازت وي - پوره موافقت وي
خپګان ممانعت وي
د زړه له سوزه تاسو ته کوم یو څو خبري
غور کیږدئ مه ځئ لري
اول وګورئ ځان ته بیا وګورئ جهان ته
د هرملت ګذران ته
څوک ګرځي په هوا کې څوک په بحر سکونت کړي
ژوندون په ښه صورت کړي
افسوس زموږ په حال - چې نه لرو کمال

نفاق کړو په جنجال

اخته یو په ګوندی‌او په حسد کې کور په کور

صورت مې اخلي اور

نن ګوری هر ملت - ترک کړی عداوت

یو بل ته په عزت

په ښه سترګه به ګوري لکه تول چې وي یو وروڼه

ته غوږ کیږده پښتونه

نه چاؤ اوریدلی نه هیچا ولیدلی

نه یې نوم چیرته لیکلی

نن کشف کړ دنیا د خپلې پوهې نه اتوم

د چا زده وُدا نوم

درانه درانه توپونه ټانکونه ماشینونه

سوونه په زرګونه

جوړیږي په دنیا زه یوې ستنې ته ناچار یم

له درده بې اختیار یم

نور خلک عالمان شول په علم کاملان شول

پوره کاریګران شول

زموږ په شان خو نه دي څوک پراته په یو زندان کې

څوک مره شوو په خپل میان کې

که مو خان که مومللک دی که مو زور کو مو هلک دی

په دې خبره کلک دی

پلانکې زما ترېور دی خو په والله که یې پریږدم

له قهره ورته ریږدم

دا څومره سپک وضعیت دی دا څومره خجالت دی

دا عين جهالت دی

لعنت په هغه خان شه چې د خپل وطن دښمن وي
زړه ژاري چې دردمن وي

دنيا په خپل هنر د علم په اثر
کړي خاوره چاندي زر

توپك او ماشيندار لاري او تيز رفتار
د اورګاډي کره شمار

په بحر کې اوګوټ ځي په هوا کې طياره
د علم په ذريعه

زرګونه کارخانې د تيلو ښې چينې
فرشونه پشمينې

نن څه غوارې جې نشته په دنيا کې لور په لور
صورت مې اخلي اور

ښه لوی لوی سرکونه ښايسته ښايسته قصرونه
جراو په کې برقونه

تور تيلو له تر اوسه موږ تيلي کره روان يو
دا څرنګ انسانان يو

دا نور هم انسانان دي هغوی هم زموږ په شان دي
د دوه لاسو خاوندان دي

خو محض په خپل کوښښ او په همت سره کامياب شول
څرګند لکه آفتاب شول

زموږ د بې علمی نه د ډيرې تنبلی نه
نه وځو سندلی نه

وراسته شوو په کوتو کې مفلسی ځنې بيمار يو

له درده بې اختيار يم

تر څو به داسي ياستو    دنيا ته به په خواست يو

تيار شکري ناست يو

د علم نه کار نه اخلو هر څه غواړو په پيسو

آخر وايه تر څو

دا پېښې او دا لاسونه    دا سترګې او غوږونه

چې علم وي پښتونه

همدغه د انسان دپاره جوړه خزانه ده

معقوله کارخانه ده

هر څوک چې بې هنر وي    په شان د ګاو وخر وي

ددې نه هم بتر وي

خپه دې را نه نه شي اپريدی او که مومند وي

زړه ژاړي چې دردمند وي

نن هر يو مملکت    په خپل عزم وهمت

آسمان ته شول اوچت

ټول احتياجات يې په خپل کور کې پيدا کيږي

لا ورځ په ورځ ډيريږي

واړه يې په مکتب    د علم په طلب

زيار باسي روز وشب

که يې نر دی که يې ښځې خو د کسب نه چاپير دي

نن هر څه ورته ډير دي

زموږ د ناراستۍ نه    سستۍ او تنبلۍ نه

کباب شو ومفلسۍ نه

دا ځکه چې نه کسب نه کمال لرو په کور
صورت مې اخلي اور
څوک لاړل او چرسیان شول څوک غلهٔ قماربازان شول
څوک ګرځي ملنګان شول
څوک غواړي شکرانه چې د پلانکي بابا اولاد یم
زه ډیر با مراد یم
څوک خان څوک یې نوکر شو څوک خویش څوک مرورشو
همدې کې دربه در شو
څوک ناست یو سرمایې ته څوک د خور او لور پیسو ته
حیران یم دې پښتو ته
واړه ګرځي کوڅو کې په خاورو په ایرو کې
په مال پسې ځنګلو کې
مکتب موږ ته زندان ښکاري معارف نه چور انکار یم
له درده بې اختیار یم
تل ګرځو سر بلدال چارپایو په مثال
چې نه لرو کمال
وطن د پلار نیکه زموږ نه شاړ شو ناراستی‌ نه
له ډیرې بې باکی‌ نه
دا ولې بې پروا شوو د خلکو د خندا شوو
نفاق وسوو تبا شوو
نو ای پښتنو ورونو تاسو ولې نه شرمیږئ ؟
تر څو به نه پوهیږئ
راځئ په اتفاق شوو په دوه له نفاق شوو
په ښه مینه اخلاق شوو

نفاق خو د ملت دپاره محض ځنکدن وي
زړه ژاړي چې دردمن وي

زما ورور پښتونه ایله دې کړه غوږونه
خبر شه له مضمونه
تاریخ دې مخ کې کېږده له نیکونونه خبر شه
د هغو په لار ورشه
د هغو له همت د هغو له دهشت
دنیا وه په هیبت
هر چیرته دښمنان د دوی تر پښو لاندې معدوم وو
د دوی د توري نوم وو
چې وبه یې کړ لښکر روان به یې شو عسکر
نه یې سین کاته نه غر
په ماتې به دښمن تله که پیاده به ؤ که سور
صورت مې اخلي اور
موږ هم پښتون زاده یو د هغو اولاده یو
یو لاس او یو پرده یو
دښمن په چل فریب سره دا غوښه نوك جدا کړو
په خپل منځ کې تبا کړو
نور بس دی جهالت روی کار کړئ صداقت
د زړه په محبت
د خدای د پاره ورونو دا زړې ګونډۍ خو پرېږدئ
یوه نوې تېږه کېږدئ

یو لاس او یو وجود شئ    پښتو باندې مضبوط شئ
د ښه ژوند په بهبود شئ
له غمه دا ناری وهم له سوزه په کوکاریم
له درده بې اختیار یم
چې غم مې په زړه زور شي    صورت پورې مې اور شي
حالت را باندې نور شي
زړه مه بدوئ ورونو که وینا کې زیات وکم وي
مجنون اخته په غم وي
نه چا ته په کینه یم    له درده دیوانه یم
مشغول په ترانه یم
خو ډیرې آرزوګانې مې دي زړه کې ځکه ژاړم
د قام ترقي غواړم
د خپل قام ثنا خوان یم    وطن ځنې قربان یم
مجنون زه ملنګ جان یم
وطن وطن به وایم څو چې روح زما په تن وي
زړه ژاړي چې دردمن وي

# د آزادۍ قیمت

پتنګ د بلې شمې یار دی
بلبل د ګلو خریدار دی
د لیلی دوه سترګې مجنون پیژني
د آزادۍ قیمت پښتون پیژني
پتنګ خو مینه په ګلزار نه لري
بلبل د شمې سره کار نه لري
پښتانه تیټ چا ته کتلی نه شي
د چا اثر لاندې راتللی نه شي
پښتانه ټینګ عزم و همت لري
په خپل ناموس باندې غیرت لري
لکه زمري په ځای د ننګ دریږي
په ځای د ننګ په وینو رنګ دریږي
نه د چا زر او نه پیسو ته ګوري
زوی د پښتون د پلار پښتو ته ګوري

پښتون د بدو نه بېزار دی
پتنګ د بلې شمې یار دی
پیسه په ښه سترګه قارون پیژني
د آزادۍ قیمت پښتون پیژني
پښتانه لوړ دي لوړ کارونه کوي
تل پیروي دوی د نیکونو کوي
نه په پیسو چا ته اورمیږ نرموي
نه د خپل ګور مري په ګور شرموي
نه سپك حالت نه بېباکي خوښوي
تل آزادي او خپلواکي خوښوي
د چا د لاس لاندې ژوندون نه کوي
داسې ژوندون زوی د پښتون نه کوي
له خپله حقه تیریدلی نه شي
د غلامۍ نوم قبلولی نه شي
اوس پوهیدلی دی پوهیږي پښتون
د چا په مکر نه غولیږي پښتون
پښتون د تورې طرفدار دی
پتنګ د بلې شمې یار دی
نه د بل چا رسم او قانون پیژني
د آزادۍ قیمت پښتون پیژني
د پښتون خته د غیرت څخه ده
دکه له ننګه او شجاعت څخه ده

پښتانه چا ته خپل بدل نه پرېږدي
ځان د دنیا مخکې خجل نه پرېږدي

د زهرو ګوټ څوك هضمولی نه شي
حق د پښتون څوك ستنولی نه شي
په خپل وطن پښتانه سر ورکوي
د صورت غوښې په سنګر ورکوي
د جنګ په لوبه آزموده دی پښتون
نه کوي څنګ با تجربه دی پښتون
زموږ پلرو نه دا اساس پاتې دی
توره او سپر موږ ته په لاس پاته دی
هر یو پښتون د بل نه جار دی
پتنګ د بلنې شمې یار دی
یو اتفاق او یو تړون پېژني
د آزادۍ قیمت پښتون پېژني
الهي ته شې نګهبان د پښتون
نه کړې زوال نوم او نښان د پښتون
همه د علم خاوندان کړې ربه
په خپل کرم یې عالمان کړې ربه
ګوندي نفاق نه په امان کړې پښتون
د اتفاق په لور روان کړې پښتون
څوك چې پښتون په بده سترګه ګوري
د بدۍ مخ دې شي ددهٔ په لوري
زه ملنګ جان یم پروانه د وطن

سر مې دی ایښی نظرانه د وطن
خدایه لوګی مې کړې په لار د وطن
چې عاشقانو کې شم شمار د وطن
ولې مې لـه درده دا ګفتار دی
پتنګ د بلـې شمې یـار دی
د مریض نبض افلاطون پیژني
د آزادۍ قیمت پښتون پیژني

# زه چې نازولی وم ...

زه چې نازولی وم نو بل څوک نازولی ؤ ؟
نن مې اننګی د بل ښپیرو ته نیولی دی

زه هغه پښتون یم چې هر چا مې احترام کاوه
ولې نن اغیار راته په بدو سترګو ګوري
دیو د کوه قاف مې د ګزاره ځنې سام کاوه
ولې نن اغیار راته په بدو سترګو ګوري
څوک ؤ چې زماد وطن لور ته به یې ګام کاوه
ولې نن اغیار راته په بدو سترګو ګوري
هر غلیم مې شل ځله میدان کې ځغلولی ؤ
زه چې نازولی وم نو بل څوک نازولی ؤ ؟
اور د ځان ځانۍ دی چې په کور مې لګیدلی دی
نن مې اننګی د بل ښپیرو ته نیولی دی

هغه شهباز يم چې مې هر طرف ته ښکار کاوه
ولې لکه زرکه نن د بل د پنجو ښکار شوم ؟

توره مې په لاس وه په ظالم به مې گوزار کاوه
ولې لکه زرکه نن د بل د پنجو ښکارشوم ؟

واك اختيار مې خپل وُ خپله خوښه به مې كار كاوه
ولې لکه زرکه نن د بل پنجو کې ښکار شوم ؟

ښه صحيح سبق مې درست جهان ته اوروولی وُ
زه چې نازولی وم نو بل څوك نازولی وُ ؟

اوس مې د تعليم د پاره زوی بل خوا ليږلی دی
نن مې اننگی د بل څپيړو ته نيولی دی

زه هغه بادار يم چې هميش مې باداري کړي
ولې مې نن خلك د غلام په سترگو گوري ؟

څوك مې په سر نه وُ ما په خپله سرداري كړې
ولې مې نن خلك د غلام په سترگو گوري ؟

ډير دي ناكام شوي چې بې ما پسې خواري كړې
ولې مې نن خلك د غلام په سترگو گوري ؟

څينو لا له ويرې نه په خپله ځان سيځلی وُ
زه چې نازولی وم نو بل څوك نازولی وُ ؟

دور د هغو تير شو اوس يې بل څوك لمسولی دی
نن مې اننگی د بل څپيړو ته نيولی دی

خدای د پاره ورونو دا ږيرې گوندی اوس پريږدی
قام کې چې نفاق وي په هيڅ وخت نه کاميابيږي

تيرې بدۍ هيرې کړئ اساس د مينې کيږدئ
قام کې چې نفاق وي په هيڅ وخت نه کاميابيږي

تول زړونه یو زړه کړئ د هیچا نه مه ویریږئ

قام کې چې نفاق وي په هیڅ وخت نه کامیابیږي

کوم وخت چې یو لاس وُ تول جهان مو لړزولی وُ

زه چې نازولی وم نو بل څوک نازولی وُ

زره د ملنګ جان د ځان ځانیږیه اور داغلیږی

نن مې اننګی د بل څپیړو ته نیولی دی

# ژړېږم لکه شمه ...

ژړېږم لکه شمه د ډېر درده ګډ په شور یم
د غم څپېړي خورمه
ګیله وکړم د چانه زخمي کړی زه خپل وروړ یم
خپل وروړ د لاسه مرمه

ژړېږم لکه شمه په ژړا مې لوند ګریوان دی
څوك غوږ نه نیسي ماله
هر دم مې په کاله کې جوړ د سرو وینو باران دی
فریاد وکړمه چاله
که حق غواړم مجرم یم سمدستي مې ځای زندان دی
حیران یم دې دنیا له
خپل ځان را ته معلوم شو ازلي په برخه تور یم
راحت نه پیژنمه
نن هریو قام آزاد شو همدا زه کم بخت اسیر یم
ژړا راځي ژړېږم

هیڅ زور کولی نه شم تړل شوی په زنځیر یم
شپه ورځ په کې کړېږم
خپل وروړ په ما ظالم شو استعمار په دام کې ګیر یم
مرغی غوندې یرکیږم

جایداد او ملك زما دی هسي نه چې خیرات خور یم
خپل حق کله پریدمه
د خدای دپاره ورونو یو د بل په حال نظر کړئ
نور پریږدئ عداوت
په کورکې اتحاد او اتفاق مو برابر کړئ
ښکاره کړئ صداقت
ځانونه د دنیا نورو قامونو نه خبر کړئ
نور مه منئ ذلت
نفاق تکه تکه کړم هسي نه چې زه کمزور یم
د غم شپې تیرومه
ملا وتړه په ټینګه په اخلاص سره شه پورته
زمری شه مه ویریږه
لاسونه د حاجت مه نیسه ته د بل چا لور ته
په دې راز وپوهیږه
د بل د لاس جوتې پښتونه مه راوړه خپل کور ته
پیغور نه وشرمیږه
چې زه « ملنګ جان » سوی همیشه دغه پیغور یم
اوس قام پرې خبرومه

## وچه ځمکه په سرو وینو ...

وچه ځمکه په سرو وینو وتره کیږي — مینان د آزادۍ کړي ګلونه
عاشقان په عشق کې بند په بند غوځیږي — محبت کې د وطن بازي سرونه

* * *

هغو زړونو کې چې مینه د وطن وي
په هغو کې بیا نه ویره وي نه واره
هغه ځوك چې د خپل قام په درد درمن وي
سر په لاس کې ګرځوي د قام له پاره
چې پوه شوی دآزاد ژوندون په خوند وي
د ذلت له ژونـدانـه نـه وي بیزاره
ننګیالی د ننګ وګر ته ځي جنګیږي
لـه آسمانـه پرې وریږي رحمتونه

پښتانه زلمي د توري باتوران دي
امتحـان او تجربې نـه دوی وتلي
د وطن د پاکې خاورې مینان دي
په سرو وینو یې همیش وطن پاللی
میدانونه یې ګټلي ځو ځو شان دي
د ښمنان یې خاورو ختو کې لړلي
کـه خدای کاندي نن سبا به ورغیږي
ملنګ جانه ستا د زړه ناسور زخمونه


PROPERTY OF ACKU 6995




PROPERTY OF ARIC Established 1989

3-1532
MAR

# زه چې نازولی وم...

زه چې نـازولـی وم نـو بل څوک نازولی و؟
نـن مـې اننګي د بل خـپـېرو ته نیولی دی
زه هغه پښتو یم چې هر چا مې احترام کاوه
ولـې نن اغیار راته په بدو سترګو ګوري
د یو د کوه قاف مې د ګزاره ځني سـام کـاوه
ولـې نـن اغـیـار راته پـه بـدو سترګو ګوري
څوک و چې زمـا د وطن لور ته به یې ګام کاوه
ولـې نن اغـیـار راتـه پـه بـدو سـترګو ګوري
هـر غلیم مـې شـل ځله میدان کې ځغلولی و
زه چې نـازولـی وم نـو بـل څـوک نازولی و؟
اور د خـان خـانی دی چې په کور مې لګېدلی دی
نـن مـې اننګي د بـل خـپـېرو تـه نیولی دی